# د حیض د احکامو متعلق
# ۶۰ سوالونه جوابونه

تالیف : الشیخ محمد بن
صالح العثیمین

ژباړن: عامر حسن

## من أحكام الحيض في الصلاة والصيام
## د مونځ او روژې متعلق د حيض احکام

[س 1] کله چې ښځه د سحر مونځ نه لږ ساعت پس پاکه شوه نو ايا دې ورځ باندې به روژه به نيسي ؟ نو دا ورځ به يې روژه حساب شي او که نه قضا به راوړي ؟

[جـ1] کله چې ښځه د سحر اذان نه پس د حيض څخه پاکه شوه نو ددې ورځ د روژې نيولو باره کې د علماو دوه قوله دي

اول: ددې ورځ روژه به نيسي ليکن دا روژه به يې نه حسابيږي بلکې قضا به پرې واجب وي او دا دامام احمد مشهور مذهب دی

دويم قول : ددې ورځ روژه پرې لازم نده پدې ورځ کې روژه ځکه صحيح نده چې هغه ددې ورځ په اول کې حايضه وه او روژه نيول اهل نه وه نو کله چې پدې ورځ يې روژه صحيح نده نو نيول يې ندي پکار او دا وخت د هغې په حق کې محترم ندی دی ځکه هغې ته ددې ورځ په اوله حصه کې د روژې نه نيولو حکم دی بلکې هغې باندې پدې وخت کې روژه نيول حرام دی او شرعي روژه خو داده چې د سحر د راختو څخه د ماښام پورې د مفطراتو څخه اجتناب وشي

او دا قول په هغې باندې د روژې د وجوب د قول څخه بهتر دی البته ددواړو اقوالو مطابق ددې ورځ قضا پرې ضروري ده

[س 2] کله چې حایضه ښځه  پاکه شوه او د سحر موځۍ نه پس يې غسل وکه موځۍ يې وکه او ددی ورځ روژه يې هم ونيوله نو ايا ددی ورځ د روژی قضای به راوړی؟

[ج2] کله چې حایضه د سحر راختلو نه مخکی پاکه شوه اګر که یو منټ مخکی وی پدی شرط چې د پاکوالی یقیین یې وی نو که چیرته د روژی میاشت وی ددی ورځی روژه به نیسی او ددی ورځ روژه به یې صحیح وی قضا پری لازم نده ځکه دی د پاکی په حالت کی روژه ونیوله اګر که غسل يې د سحر راختو نه پس وکه دی کی څه حرج نشته لکه یو سړی دجنابت په حالت کی چربانګی وکړی او غسل د سحر اذان نه پس وکړی نو دهغه روژه به صحیح وی
پدی مناسبت باندی زه یو بلی خبری ته اشاره کول غواړم هغه دا چې بعضی زنانه دا ګمان کوی چې د روژه ماتی نه پس د ماښوستن موځۍ نه مخکی  حیض راشی او ددغی ورځ روژه يې نیولی وی نو ددی ورځی  روژه يې فاسد ده ددی خبری هیڅ دلیل نشته بلکی که حیض يې د ماښام نمر پریوتو نه یو منټ ورسته راغلی نو هم روژه  يې صحیح ده

[س 3] کله چې د نفاس والا ښځه د څلويښت ورځو نه مخکی پاکه شی نو ایا روژی به نیسی او موځۍ به کوی ؟

[ج3] وو .... کله چې د نفاس والا ښځه (هغه ښځه چې بچې يې زیګولی وی ) د څلويښت ورځو نه مخکی پاکه شی نو که  د رمضان میاشت وی روژه نیول پری لازم دی او موځۍ پری هم واجب دی د خاوند جماع  ورسره هم جایز ده ځکه هغه پاکه ده او د روژی موځۍ او د جماع نه کولو څه مانع پکی نشته

[س 4] کله چې د یوې ښځې حیض عام طور سره په میاشت کې اته ورځې یا وه ورځې راځي لیکن یو یا دوه ځل ددې ورځو نه ډیر راشي نو څه حکم دی ؟

[ج4] کله چې د یوې ښځي حیض عام طور سره شپږ ورځې یا وه ورځې وی لیکن یو وخت دا مدت ډیر شی او اته ورځې نهه ورځې لس یا یولس شي نو دا ښځه به مونځ نه کوی تر دی چې پاکه شی ځکه نبی علیه السلام د حیض لپاره خاص حد ندی مقرر کړی او الله تعالی فرمايي

{وَيَسْأَلُونَكَ عَنِ الْمَحِيضِ قُلْ هُوَ أَذىً} [البقرة: 222]

دوی تا څخه د حیض باره کې پوښتنه کوی ته ووایه دا (حیض) ناپاکی ده

نو تر څو پوری چې دا وینه باقي وی نو ښځه به د حیض حالت کې وی تر دی چې پاکه شی او غسل وکړی بیا به مونځ کوی

که چیرته په بله میاشت کې دهغی حیض ددی ورځو نه کم راشي نو دی صورت کې به هم غسل کوی کله چې پاکه شوه اګر چې حیض یې د مخکنی ورځو په مقدار نه وو (هغی نه کم وو)

مقصد دا چې کله هم د ښځې حیض موجود وی نو مونځ به نه کوی برابره ده که حیض د مخکنی ورځو په مقدار وی یا هغی نه زیات کم وی پس کله چې پاکه شی مونځ به کوی

[س 5] ايا نفاس والا ښځه به څلويښت ورځې تيروی نه به مونځ کوی نه به روژه نيسی که نه صرف د وينې ودريدو لره اعتبار دی کله چې وينه ودريږی غسل به کوی او مونځ ؟ او د پاکوالی لپاره کم ازکم وخت څومره دی ؟
[ج5]
د نفاس والا ښځې لپاره خاص وخت ندی مقرر کله چې وينه جاری وه نه به مونځ کوی نه به روژه نيسی او نه به ورسره خاوند جماع کوی ليکن کله چې ووينی چې وينه ودريده اګر که د څلويښت ورځو نه مخکی وی لکه لس ورځې يا پينځه ورځې پس نو مونځ به کوی روژه به نيسی او د خاوند لپاره ورسره جماع کول جايز دی څه حرج نشته
مقصد دا چې نفاس يو محسوس امر دی احکام ددی د وجود او عدم سره تعلق لری کله چې موجود وو نو احکام به يې هم موجود وی او کله چې ښځه پاکه شوه د نفاس د احکامو څخه خلاصه شوه البته که د نفاس مدت د شپيته ورځو نه زيات شو نو دا ښځه به مستحاضه وی بيا به د حيض د ورځو په مقدار مونځ روژه نه نيسی او هغې نه پس به غسل کوی او مونځ به شروع کوی
[س 6]کله چې د روژی په مياشت کی د ښځې څخه دوينی معمولی معمولی قطری رالبيږی او ټوله مياشت وی نو ايا روژه به نيسی او روژه يې صحيح ده ؟
[ج6]وو....روژه يې صحيح ده ،د ی قطرو باندی څه باک نشته ،ځکه دا د رګونو نه راځی او د علی بن ابی طالب رضی الله عنه نه روايت دی فرمايي:بيشکه دا قطری چې د پوزی د وينې په څير وی حيض ندی

[س 7] که حایضه یا نفاس والا ښځه د سحر راختو نه مخکی پاکه شی او د سحر راختو نه پس غسل وکړی نو یا روژه به یې صحیح وی؟

[جـ7] وو....د حایضی او نفاس والا ښځی روژه پدی صورت کی صحیح ده ځکه دا پدی وخت کی د روژی نیولو اهل شوه او دا دهغه سړی پشان ده چې د جنابت په حال کی پری سحر شی نو دده روژه به صحیح وی دلیل دالله تعالی دا قول دی

{فَالْآنَ بَاشِرُوهُنَّ وَابْتَغُوا مَا كَتَبَ اللَّهُ لَكُمْ وَكُلُوا وَاشْرَبُوا حَتَّى يَتَبَيَّنَ لَكُمُ الْخَيْطُ الْأَبْيَضُ مِنَ الْخَيْطِ الْأَسْوَدِ مِنَ الْفَجْرِ} [البقرة: 187]

پس وس تاسو د خپلو ښځو سره جماع وکړی او هغه څه ولټوی چې الله تاسو له لیکلی دی خوراک څښاک تر هغه پوری وکړی چې تاسو ته د سحر د سپین تار او تور تار مابین کی فرق واضح شی

نو کله چې الله تعالی د جماع اجازت هغه پوری ورکړ چې سحر راوخیژی دی نه لازمه شوه چې غسل کول د سحر راختو نه پس وی

او د عایشی رضی الله عنها حدیث : نبی علیه السلام به په روژه کی د جنابت په حالت کی صباح کوو یعنی هغی به د سحر راختو نه پس د جنابت نه غسل کولو

[س 8] کله چې ښځه د وینی راوتل محسوس کړی لیکن د نمر پریوتو نه مخکی راونه وځی یا د حیض درد محسوس کړی نو ایا ددغی ورځی روژه به یې صحیح وی یا به پری قضا واجب وی ؟

[جـ8] کله چې د حیض څخه پاکه ښځه د حیض راتله محسوس کړی او هغه روژه وی لیکن د حیض وینه د ما ښام نه پس راوځی یا د حیض درد محسوس

کړی او وینه د ماښام نه پس راوځی نو ددغی ورځی روژه یې صحیح ده بیا که فرض روژه وه نو اعاده پری نشته او که نفل وه نو ثواب به نه خرابیږی

[س 9] کله چی ښځه وینه ووینی او یقین یې نه وی چې د حیض وینه ده نو ددغی ورځ د روژی څه حکم د ی؟
[جـ 9] ددغی ورځ روژه یې صحیح ده ، ځکه اصل د حیض نشوالی دی تر څو چی واضح نشی چی د غه وینه د حیض ده
[س 10] کله کله ښځه د وینی معمولی شان اثر وینی یا وینی چی د وینی لګی قطری د ورځی په مختلفو اوقاتو کی راځی کله دا د حیض په ورځو کی وی او کله نورو ورځو کی نو پدی دواړه حالتونو کی د روژی څه حکم دی
[جـ 10] ددی سوال جواب مخکی تیر شو صرف دومره ده چی که دا قطری د حیض په ورځو کی وی او زنانه په ګمان دا د حیض وینه وه نو دا به حیض وی .
[س 11] ایا حایضه او نفاس والا ښځه به د روژی په میاشت کی د ورځی خوراک څښناک کوی ؟
[جـ 11]وو....خوراک څښناک به کوی لیکن بهتر داده چی په پټه یې وکړی کله چی کور کی ماشومان موجود وی ځکه دا کار هغوی په شک کی اچوی
[س 12] کله چی حایضه او نفاس والا ښځه د مازیګر په وخت کی پاکه شوه نو ایا د ماسپښین مونځ به د مازیګر سره یو ځای کوی یا صرف د مازیګر مونځ به کوی؟

[جـ 12] پدی مساله کی راجح قول دادی چی دی باندی صرف د مازیگر موځ فرض دی ځکه د ماسپښین د موځ په واجبیدو باندی هیڅ دلیل نشته او اصل د ذمی بری والی دی
او نبی علیه السلام فرمایي: چا چی د مازیگر د موځ یو رکعت مخکی د نمر پریوتو نه مونده کړ نو یقینا دی د مازیگر موځ راونیو
دا یې ندی ویلی چی د ماسپښین موځ یې راونیو ، که ماسپښین موځ پری لازم وی نبی کریم ﷺ به بیان کړی وی
او دا دی وجی نه که چیرته ښځه د ماسپښین د وخت داخلیدلو نه وروسته حایضه شی نو صرف د ماسپښین د موځ قضا به پری لازم وی نه د مازیگر حالانکه د ماسپښین موځ د مازیگر سره جمع کیدای شی
او ددی صورت او دغی صورت مابین کی هیڅ فرق نشته چی سوال ترینه شوی دی دی وجی نه قول راجح دادی چی صرف د مازیگر موځ پری لازم دی ځکه پدی نص او قیاس دلیل دی
او همدارنگه که د ماښوستن د وخت تیریدو نه مخکی پاکه شوه نو صرف د ماښوستن موځ به پری لازم وی نه د ماښام موځ
[س 13]
بعضی زنانه چی بچی زیگوی ددوه حالاتو څخه خالی نه وی :
۱: یا به بچی د هغی د مکمل والی نه پس زیگوی یا به یې د مکمل والی نه وروسته نو ددغی ورځی د روژی څه حکم دی چی بچی یې پکی زیگولی دی او د هغی ورځو چی وینه پکی راځی ؟

[جـ 13]کله چې ماشوم پوره خلقت نه وی اختیار کړی نو دا وینه به د نفاس وینه نه وی دی وجی نه ددی ښځی روژه او مونځ به صحیح وی او که چیرته ماشوم مکمل خلقت والا وو دا وینه به د نفاس وی بیا ورله مونځ او روژه نیول جایز ندی
او پدی مساله کی قاعده داده چې کله ماشوم د پوره خلقت والا وو نو دا وینه به د نفاس وی او که د پوره خلقت والا نه وو وینه به نفاس ولاا نه وی نو کله چې وینه د نفاس وی هغی باندی روژی او مونځ حرام دی او که نفاس نه وی بیا ورله جایز دی
[س 14] د حاملی ښځی نه د روژی په حالت کی وینه راتلل په روژی باندی څه اثر کوی؟
[جـ 14]کله چې د زنانه څخه د حیض وینه راوځی او هغه روژه وی نو روژه یې فاسد ده نبی کریم ﷺ فرمايي : ایا داسی نه ده چې کله ښځه حایضه شی نه مونځ کوی نه روژی نیسی ؟ دی وجی نه حیض او نفاس د روژی د ماتونکی شیانو څخه دی او روژی لره ماتوی
او د حاملی څخه د روژی په حالت کی وینه راتګ که حیض وی نو دا د عامو زنانه پشان ده یعنی په روژی به یې اثر کوی او که د حیض وینه نه وی نو بیا هیڅ اثر نه لری
او د حاملی ښځی حیض هغه دی چې د څه وخت نه حامله شوی ده هغی وخت نه د حیض په ورځو کی وینه راځی نو دا د قول راجح مطابق حیض دی د حیض احکام ورله ثابت دی

لیکن که د حامله کیدو نه پس دا حیض ودریدلی وو بیا وروسته یی څه وخت
وويني نو دا به د حیض وینه نه وی
او په مونځ او روژی به یی څه اثر نه وی
[س 15] کله چی د یوی ښځه د حیض په ورځو کی یو ورځ وینه راځی او
بله ورځ نه راځی نو هغه به څه کوی ؟
[جـ 15] صحیح قول دادی چی دا وچوالی د وینی کوم چی د حیض په ورځو
کی راځی دا هم د حیض څخه دی دیته طهر نشی ویلی دی وجی نه به پدی
حالت کی د مونځ او روژی نه اجتناب کوی

بعضی علما وایی ؟ کومه ښځه چی یو ورځ وینه وینی او یو ورځ وینه یی
وچیږی نو د وینی په حالت کی به مونځ روژه نه نیسی او د وچوالی په صورت
کی به مونځ روژه نیسی تر دی چی پینځلس ورځی تیری شی بیا ددی نه
وروسته به دا وینه د استحاضی وینه و ی

او دا د امام احمد مشهور مذهب دی

[س 16] د حیض په اخیری ورځو کی د پاکوالی نه مخکی کله ښځه د وینی اثر
نه وینی نو ایا ددغی ورځی روژه به نیسی که نه ؟ او هغی سپینی اوبه تر وسه
ندی لیدلی
[جـ 16] که د هغی عام حالت دا وی چی سپینوالی نه وینی لکه بعضی زنانه
داسی وی نو روژه به نیسی او که عادت یی دا وی چی دا سپینوالی وینی نو
تر هغه پوری به روژه نه نیسی چی دا یی لیدلی نه وی

[س 17]  د حایضی او نفاس والا ښځی لپاره قران ته کتل یا په یادو لوستل څنګه دی کله چی ضرورت وی لکه خلکو ته تعلیم ورکوی یا خپله یی زده کوی؟
[جـ 17] د ضرورت په وخت کی د حایضی او نفاس والا ښځی لپاره د قران لوستلو کی څه حرج نشته کله چی ښځه د قران تعلیم ورکوی یا د هغه طالب علمه وی خپل مقرر لولی
البته د اجر او ثواب په نیت ورله د قران لوستل صحیح ندی ځکه اکثر علماو وایی د حایضی لپاره د قران لوستل جایز ندی
[س 18]  ایا د حایضی ښځی لپاره د پاکوالی نه پس کپړی بدلول ضروری دی کله چی نه په وینه ناپاکی شوی وی نه په بل ناپاک شی ؟
[جـ 18]

نه دا پری لازم ند ځکه حیض بدن لره نه نجسوی صرف د حیض وینه د بدن هغه حصه ناپاکوی چی تری ولګی دی وجی نه نبی علیه السلام زنانه وو ته حکم کړی وو چی کله د هغوی په کپړو باندی وینه ولګی نو هغه به وینځی او همدغه کپړو کی به مونځ کوی

[س 19] یو کس تپوس کوی : چی یو ښځی د نفاس د وجی د رمضان په میاشت کی وره ورځی روژی خوړلی وی او د بل رمضان د راتلو پوری یی قضا د څه مرض د وجی نه وی راوړی نو پدی باندی څه لازم دی حالانکه دریم رمضان راقریب شوی دی ؟

[جـ 19]  لکه څنګه چې تا ذکر کړه چې دا ښځه بیماره ده او قضا نشی راوړی نو دا به هله قضا راوړی کله چې یې وس وشی ځکه دا معذوره ده اګر که بله روژه هم راشی

البته که څه عذر یې نه وو او صرف د سستی په بنیاد یې قضا نه راوړه نو دی له جایز ندی چې دویم رمضان پوری قضا وروسته کړی  عایشه رضی الله عنها فرمایي : ما باندی به فرضی روژی پاتی وی ما به هغه د شعبان نه مخکی نه شوی نیولی

دی وچې نه پدی ښځه باندی لازم دی چې ځان ته وګوری که د عذر نه بغیر یې دا کار کړی وی دا ګناه ګاره ده الله ته به توبه وباسی او د روژو په قضا راوړلو به جلدی کوی  او که معذوره وه نو بیا که یو کال یا دوه کاله روژی وروسته شی څه حرج نشته

[س 20]بعضو زنانه و باندی دویم رمضان راشی او هغوی د تیر رمضان روژی نه وی نیولی نو دوی باندی څه لازم دی ؟

[جـ 20]په دوی باندی ددی عمل څخه الله تعالی ته توبه ایستل لازم دی ځکه چا باندی چې د رمضان د روژو قضای وی هغه له پکار ندی چې بلی روژی پوری یې د عذر نه بغیر وروسته کړی عایشه رضی الله عنها فرمایي په ما باندی به د رمضان د روژو قضایي وه ما به شعبان کی راوړله

دا دلیل دی چې ددویې روژی د راتلو نه مخکی قضایي راړل پکار دی دی ښځی له پکار دی چې الله تعالی ته توبه وکړی او د دویم رمضان نه پس د هغو ورځو د روژو قضا راوړی چې خوړلی یې وی

[س 21] کله چې د ماسپښین په وخت کې یوه ښځه د یوې کینټې لپاره حایضه شي او د ماسپښین مونځ یې نه وی کړی نو ایا د پاکوالی نه پس ورباندی ددی مونځ قضا ضروری ده
[جـ 21] پدی مساله کې د علماو خلاف دی بعضې وایې: قضا پرې لازم نده ځکه هغې کوتاهي نده کړی او ګناه یې نده کړی ځکه هغې لپاره جایز دی چې مونځ په اخر وخت کې ادا کړی
بعضی علما وایې قضا پرې لازمه ده دلیل د نبی کریم ﷺ دا قول دی چا چې دمونځ یو رکعت راونیو نو هغه ټول مونځ راونیو
احتیاط پدی کې دی چې د ماسپښین مونځ قضا به رواړی ځکه دا یو مونځ دی په کولو کې یې څه مشقت ( تکلیف) نشته
[س 22] کله چې حامله ښځه د بچې پیدایش نه یو یا دوه ورځې مخکې وینې لره ووینې نو ایا مونځ او روژه به پریږدی که نه .؟
[جـ 22]
کله چې حامله ښځه د ولادت نه یو یا دوه ورځې مخکې وینه ووینې او هغې سره جریان وی نو دا به نفاس وی مونځ او روژه به پریږدی او که جریان د وینې نه وی نو دا به هسې وینه وی څه اعتبار به ورله نه وی او د مونځ او روژې څه مانع به نه وی
[س 23] د ښځې لپاره د حیض بندولو ګولی استعمالول په دی نیت چې خلکو سره یو ځای روژه ونیسی څه حکم لری ؟
[جـ 23] زه ددی کار څخه منع کوم ځکه ددی ګولو په استعمال سره زنانه ته ستر ضرر رسیږی ځکه ماته د ډاکټرانو په ذریعه پته لګیدلې ده ښځې ته ویل

پکار دی چی دا ( حیض ) الله د ادم په لونړو باندی لیکلی دی نو دالله په تقدیر راځی شه او هله روژه نیسه چی حیض نه وی که او کله چی حیض وی نو روژی خوره او دالله په تقدیر راضی شه

[س 24] یوه ښځه د نفاس نه دوه میاشتی پس کله چی پاکه شوی وی وینی چی د وینی وړی قطری ترینه راځی ایا روژه به ماتوی  او مونځ به نه کوی که نه څه به کوی ؟
[جـ 24] د حیض او نفاس  مسایل د زنانه دومره ډیر دی چی د سمندر پشان دی هیڅ غاړه یی نشته او ددی مشکلاتو د اسبابو څخه د حمل او حیض بندولو ګولی استعمالول دی
حالانکه مخکی دور کی خلکو ته ددومره مسایلو معلومات نه وو دا صحیح ده چی دا مسایل د نبی علیه السلام د بعثت نه بلکی کله نه چی زنانه پیدا شوی دی دا موجود دی لیکن پدومره کثرت سره ددی وجود چی انسان یی په حل کولو کی حیران پاتی شی یو غم نه ډک کار دی
لیکن عام قاعده داده چی کله ښځه د نفاس او حیض څخه پاکه شوه او بیا یی سیینی خړی اوبه یا قطری ولیدی نو دا به حیض نه وی  نو مونځ او روژه به نیسی د خاوند جماع به وسره هم جایز وی ځکه دا حیض ندی ام عطیه رضی الله عنه فرمایی مونږ به د پاکوالی نه پس خړی اوبه یا زیړی اوبو لره هیڅ اعتبار نه ورکوو
كله ليس بحيض، فلا يمنع من الصلاة، ولا يمنع من الصيام، ولا يمنع من [أخرجه البخاري، وزاد أبو داود بعد الطهر وسنده صحيح] .

دی وجی نه مونږ وایو چې د طهر نه پس ددی شیانو وجود څه اثر نه کوی او ښځه د مونځ روژی او د جماع کولو نه نه منع کوی لیکن ضروری ده چې ښځه به جلدی نه کوی تر څو چې یې طهر نه وی لیدلی ځکه بعضی زنانه چې وینه ودریږی سمدست غسل کوی مخکی ددینه چې طهر یې وشی دی وجی نه به د صحابه زنانو عایشی رضی الله عنها په مالوچو کی وینه لیګله چې وګوری عایشی رضی الله عنها به فرمایل: تاسو جلدی مه کوی تر څو چې مو سپینی اوبه نه وی لیدلی

. [س 25]د بعضو زنانه و وینه همیشه جاری وی او کله کله یو یا دوه ورځی بنده شی بیا شروع شی پدی صورت کی د مونځ روژی او نورو عباداتو څه حکم دی ؟

[جـ 25]د ډیرو علماو موقف دادی چې کله د ښځی د حیض راتلو معلومی ورځی وی او هغه تیری شی نو غسل به کوی مونځ او روژه به نیسی او کومه وینه چې دوه یا دری ورځی پس وینی هغه به حیض نه وی ځکه د طهر کم ازکم مدت ددی علماو په نزد ۱۳ ورځی دی

او بعضی علما وایی : ښځه چې کله وینه ووینی هغه به حیض وی او کله چې ودریږی نو دا به پاکه وی اګر که ددواړو حیضو مابین کی ۱۳ ورځی نه وی

[س 26] د ښځی دپاره بهتر کوم عمل دی چې د رمضان په شپو کی په کور کی مونځ وکړی که مسجد کی خاص طور سهره کله چې مسجد کی وعظ او نصحیت بیانیږی او کومی زنانه چې مساجد کی مونځ کوی هغوی ته تاسو څه نصیحت کوی ؟

[جـ 26]  بهتر داده چی ښځی په خپلو کورونو کی مونځ وکړی د نبی علیه السلام ددی عام قول د وجی
وبیوتهن خیر لهن" د زنانه و لپاره ددوی کورونو غوره دی
ځکه چی د زنانه د کور نه وتل په اکثر اوقاتو کی د فتنی نه خالی نه وی نو د ښځی په کور کی پاتی کیدل دی نه بهتر دی چی مسجد ته د مونځ لپاره ووځی او وعظونه او حدیث اوردیل هغی لپاره ممکن ده چی د کیسټ په ذریعه یی واوری او کومی زنانه چی مساجد ته مونځ لپاره ځی هغوی ته زما دا نصحیت دی چی د ډول او سینګار سره نه وځی نه د عطرو استعمال وکړی
[س 27] په روژه کی د طعام څکل څه حکم لری خاص طور سره د روژه داری زنانه لپاره ؟
[جـ 27] دی کی څه حرج نشته ځکه دی ته ضرورت دی لیکن زنانه چی کوم شی وڅکی هغه به بیرته ګوزاری ( تیروی به یی نه )

[س 28]  یوه ښځه په حادثه کی زخمی شوه او هغه د حمل په اولنی ورځو کی وه نو د وینی د راوتلو نه پس یی بچی وغورځو ایا دی لپاره روژه خوړل جایز د ی که نه روژی به نیسی او که روژه وخوری نو ایا ګناه پری شته ؟
[جـ 28]  زه وایم : د حامله زنانه حیض نه راځی لکه دا خبره امام احمد رح کړی ده چی حمل والا زنانه د حیض په بندیدلو باند ی پیژندل کیږی او علما فرمایی د حیض حکمت د مور په ګیډه کی ماشوم ته خوراک ورکول دی نو کله چی حمل پیدا شی حیض بندیږی  لیکن بعضی زنانه د خپل عادت مطابق دهغوی حیض جاری وی لکه څنګه چی د حمل نه مخکی وو نو دی باره کی حکم دادی چی دا به حیض حسابیږی ځکه

ددی حیض جاری دی او په حمل سره څه اثر پری ندی شوی
نو دی وجی نه پدی صورت کی به حامله ښځه د عامی حایضی زنانه پشان نه روژه نیسی نه مونځ به کوی
او د جواب حاصل دادی چی د حاملی ښځی نه راوتونکی وینه په دوه قسمه ده : اول هغه وینه چی د حمل نه مخکی هم وه او وروسته هم نو دا به حیض وی یعنی حمل پری هیڅ اثر ندی کړی
دویم قسم هغه وینه ده چی د حمل په وجه راوځی یا د حادثې په وجه یا د څه شی اوچتولو په وجه یا د غورځیدو په وجه نو دا وینه د حیض نده بلکی دا د رګ وینه ده دی وجی نه مونځ او روژی باندی یی هیڅ اثر نشته بلکی دا ښځه به د پاکو زنانه و په حکم کی وی
لیکن که د حادثې په وجه بچی یا د هغه حمل چی د مور په خیټه دی راوغورځیګی نو علما فرمایي که دا حمل د انسان شکل باندی وو نو ددی نه وروسته خارجه وینه به نفاس وی پدی کی به زنانه مونځ او روژه پریږدی او خاوند به ورسره جماع هم نکوی تر دی چی پاکه شی
او که حمل پداسی صورت کی راوځی چی خلقت یی مکمل نه وی نو دا وینه به نفاس نه وی بلکی یو فاسد وینه به وی مونځ او روژی وغیره باندی یی څه اثر نشته
او علما فرمایي : کم از کم مدت چی حمل پکی د انسان شکل اختیاروی اتیا ورځی دی ځکه د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه په حدیث کی راځی نبی کریم ﷺ فرمایي :ستاسو یو تن د مور په ګیډه کی څلویښت ورځی جمع کیږی بیا همدغومره ورځی کی علقه تری جوړیږی ( یعنی د وینې ټکړه ) بیا همدغومره

وخت کی ترینه مضغه جوړه شی بیا هغی ته پریشته راولیږلی شی او په څلورو شیانو ورته حکم وشی د هغه رزق نیته عمل او دا چی بد بخت دی که نصیب والا

او دا ممکن نده چی حمل د انسان شکل د څلویښت ورځو نه مخکی اختیار کړی او غالب داده چی تخلیق دانسان د ۹۰ ورځو نه مخکی نه واضحیږی لکه دا د بعضی علماو قول دی

[س 29] زه یوه ښځه یم ما یو کال مخکی په دریمه میاشت بچی وزیږووو او تر هغه می مونځ نه کوو چی پاکه شوم ماته وویل شو چی تا باندی مونځ کول لازم وو نو وس به زه څه کوم حالانکه ماته دهغه ورځو تعداد په صحیح توګه ندی معلوم چی ما پکی مونځ ترک کړی دی
[جـ 29] د علماو په نزد دی مساله کی څه اختلاف نشته چی کله یوه ښځه دری میاشتی پس بچی ساقط کړی هغه به مونځ نه کوی ځکه ښځه چی کله ماشوم ساقط کړی او هغه د انسان شکل اختیار کړی وی نو دا وینه به د نفاس وینه وی او مونځ به نه کوی
علما فرمایی د زنانه په ګیډه ماشوم په یو اتیا ورځو کی خلقت اختیاروی او دا ورځی د دری میاشتو په نسبت کمی دی
نو کله چی ستا یقین وی چی بچی دی دری میاشتی پس غورځولی دی نو دا وینه به د نفاس وی د کومی د وجی نه چی مونځ پریخودلی شی او کله چی تاته د مونځونو د مقدار پته نشته نو اندازه ولګوه او هغه مونځونه قضایی راوړه چی ستا غالب ګمان وی چی پریخودی دی دی

[س 30] یوه زنانه سوال کوی چی کله نه په هغی روژی فرض شوی دی روژی نیسی لیکن د هغی ورځو د روژو قضایي نشی راوړی چی ترک کوی یی ځکه د هغی حیض بیماری هره میاشت کی راځی او ځکه چی هغی ته د ورځو عدد ندی معلوم کومو کی چی یی روژې پریښی دی
دا به وس څه کوی دی باره کی تاسو رهنمای وکړی
[جـ 30] ډیره د افسوس خبره ده چی داسی کار د مسلمانانو زنانه و څخه صادر شی د روژو د قضایي نه راوړل خو یا د جهل د وجی وی یا د سستی د وجی او د واړه صورتونو کی ګناه ده ځکه د جهالت دوایي سوال کول دی او د سستی دوایي د الله تعالی تقوی اختیارول د هغه نه ویره او دهغه په احکامو عمل کول دی دی ښځی له پکار دی چی الله ته توبه وکړی او د هغی ورځو اندازه وکړی چی روژی یی پکی پریښی دی او قضایي راوړی پدی سره به یی ذمه بری شی او د الله نه دعا ده چی توبه یی قبول کړی

[س 31] یوه زنانه پوښتنه کوی چی کله د مونځ د وخت دداخلیدو نه پس ښځه حایضه شی نو ایا ددی مونځ قضا به رواړی کله چی پاکه شوه ؟ او دغه شان که ښځه د یو مونځ د وخت ختمیدو نه مخکی پاکه شی
[جـ 31] کله چی زنانه د یو مونځ دوخت داخلیدو نه پس حایضه شی نو هغی باندی واجب دی چی کله پاکه شی ددی مونځ قضا راوړی کله چی یی د حیض راتلو نه مخکی دغه مونځ نه وی ادا کړی ځکه نبی کریم ﷺ فرمایي ځوک چی د مونځ یو رکعت راونیسی نو هغه ټول مونځ راونیو
"من أدرك ركعة من الصلاة فقد أدرك الصلاة"

نو کله چې یوه ښځه د مونځ یو رکعت راونیسی اوبیا یې حیض راشی مخکی ددی نه چې مونځ مکمل کړی نو دا به د دی مونځ قضا راوړی کله چې پاکه

ثانیاً:دویم کله چې زنانه د حیض څخه مخکی د مونځ د وخت دداخلیدو نه پاکه شی نو هغی باندی ددی مونځ قضایي ضروری ده نو که هغه مخکی د نمر راختو نه پاکه شوه هغی باندی د سحر مونځ قضا راوړل ضروری دی

او که د نمر پریوتو نه مخکی د یو رکعت په مقدار باندی پاکه شوه نو د مازیګر مونځ قضایي پری لازم ده او که د نیمی شپی نه مخکی د یو رکعت په مقدار باندی پاکه شی نو هغی باندی د ماښوستن د مونځ قضا راوړل ضروری دی

او هغی باندی لازم دی چې د سحر مونځ وکړی کله چې د هغی وخت داخل شی د الله ددی قول د وجی

: {فَإِذَا اطْمَأْنَنتُمْ فَأَقِيمُوا الصَّلاةَ إِنَّ الصَّلاةَ كَانَتْ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ كِتَاباً مَوْقُوتاً} [النساء: 103] کله چې تاسو په امن شی نو مونځ قایم کړی بیشکه مونځ په مسلمانانو باندی په مقرر وخت کی فرض دی

یعنی مونځ لپاره یو وخت مقرر دی چې د هغی نه وروسته کول یې جایز ندی او د هغی نه مخکی کول یې هم صحیح ندی

[س 32] زما حیض پداسی وخت کی راغلی چې مونځ باندی ولاړه وم زه به وس څه کوم ایا د پاکوالی نه پس به دا مونځ راګرځوم ؟

[جـ 32] کله چې د مونځ د وخت داخلیدو نه پس حیض راشی لکه د زوال نه نیمه ګینه پس مثلا نو هغی باندی لازمه ده چې کله حیض نه پاکه شی ددی مونځ قضایي راوړی

او د حیض په وخت چې کوم مونځ ترینه پاتې شوی وی د هغې قضا به نه راوړی د نبی علیه السلام ددی قول د وجې کله چې ښځه حایضه شی مونځ او روژه نه نیسی
ألیست إذا حاضت لم تصل ولم تصم".
او علماو اجماع کړی چې هغه به هغه مونځ نه راګرځوی چې د حیض په مدت کې ترینه قضا شوی وی
البته که هغه پاکه شی او د مونځ وخت دومره پاتې وی چې یو رکعت یا ددی نه ډیر پکې ادا شی نو ددغې وخت مونځ به کوی د نبی علیه السلام ددی قول د وجې نه
"من أدرك ركعة من العصر قبل أن تغرب الشمس فقد أدرك العصر".
چا چې د مازیګر یو رکعت راونیو ممکې ددی نه چې نمر پریوزی نو هغه د مازیګر ټول مونځ راونیو
نو که هغه د مازیګر په وخت یا د نمر راختلو نه مخکې پاکه شی چې د نمر راختو یا پریوتو کې د یو رکعت ادا کولو په مقدار وخت پاتې وی نو د مازیګر او سحر مونځ به ادا کوی
[س 33] یو کس وایي زما مور دی چې ۶۵ کاله عمر لری او ۱۹ کاله کیږی چې بچې یې ندی زیږکولی او وس ددری کاله نه راهیسی د هغې وینه راځی او نژدی ده چې روژی راشی نو هغه به پدی صورت حال کې څه کوی ؟
[جـ 33]ددی حکم دادی چې مونځ او روژه به پریږدی دومره وخت چې مخکنی عادت یې وو ( د حیض د راتلو ) که د هغې عادت داوو چې په اول د

میاشتی کی یې حیض راته د شپږو ورځو مثلا نو د هری میاشتی په اول کی به شپږ ورځی مونځ او روژه نه نیسی

او کله چې دا ورځی تیری شی غسل به کوی مونځ او روژه به شروع کوی او مونځ به پدی ډول کوی چې خپله شرمګاه به وینځی او ټوټه وغیره به تری تړی او د مونځ د وخت داخلیدو نه پس به اودس کوی او دا کار به کوی کله چې نفلی مونځونه کوی  او پدی صورت کی هغی لره جایز دی چې د ماسپښین او مازیګر او ماښام ما ښوستن مونځونه جمع کړی

دی لپاره چې تکلیف ورته نه وی او دا عمل ( اودس ) کول ورله یو وخت شی یو ځله د ماسپښین او مازیګر لپاره او یو ځل د ماښام او ماښوستن لپاره او یو ځل د سحر لپاره  ددی په ځای چې دا کار پینځه وخته وکړی دری وخته به یې کوی

[س 34] د حایضی ښځی لپاره په مسجد حرام کی د خطبی او احادیثو اوریدلو په غرض کیناستل څه حکم لری؟

[جـ 34] د حایضی ښځی لپاره جایز ندی چې مسجد حرام یا بل کوم مسجد کی پاتی شی لیکن د هغی لپاره  په مسجد باندی تیریدل یا د مسجد نه څه د حاجت شی اغستل جایز دی لکه نبی کریم ﷺ عایشه رضی الله عنها ته فرمایلی وو چې د مسجد څخه یو کپړه راوخلی هغی وویل زه خو حایضه یم نبی کریم ﷺ وفرمایل حیض ستا په لاس کی ندی

نو کله چې حایضه ښځه په مسجد کې تیره شوه او د هغې یقین وو چې مسجد کې ترینه وینه نه پریوځي نو څه باک نشته

البته مسجد کې ورله کیناستل جایز ندی او پدی باندی دلیل دادی چې نبی کریم ﷺ زنانه ته حکم کړی وو چې عیدګاه ته ځواني او زړی او حایضی راوځي لیکن حایضی ښځې به د مونځ ځای ته نه نژدی کیږی

نو دادلیل دی چې حایضه لپاره په مسجد کې د خطبه یا درسونو د اوریدلو لپاره پاتی کیدل جایز ندی

## من أحكام الطهارة في الصلاة

## په مونځ کې د طهار ت احکام

[س 35] هغه اوبه چې د ښځې نه رالیږی سپینې وی یا زیړی ایا دا به پاکی وی که نجس ؟

او ایا پدی سره اودس لازمیږی سره ددی چې دا همیشه رارواني وی ؟ او کله چې بندی وی خاص طور سره اکثر ښځې کومې چې علم حاصلوی هغوی دی په وجه اودس لازم

[جـ 35] د تحقیق نه پس ماته معلومه شوه چې د ښځې څخه رارونی اوبه که د مثانې نه نه وی او د رحم نه راوځي نو دا به پاکې وی لیکن اودس پری ماتیږی ځکه د اودس ماتونکی شی لپاره لازم ندی چې نجس وی

لکه هوا چې د شرمګاه نه راوځي او اودس پری ماتیږی

دی وجی نه کله چی دا د ښځی نه راوځی او هغه په اودس وی نو اودس به تازه کوی

لیکن که همیشه لپاره روانی وی نو اودس نه ماتوی لیکن د هر مونځ لپاره به اودس کوی کله چی د مونځ وخت داخل شی نفل وی او که فرض او قران تلاوت کول او هر مباح شی کول ورله جایز دی

لکه علماو همدارنګه فتوی د سلسل البول باره کی ورکړی ( هغه څوک چی متیازی ترینه همیشه روانی وی)

لیکن که کله کله بندیده او د هغی عادت داوو چی د مونځ په وختونو کی بندیده نو هغه به مونځ هغه وخت ته وروسته کوی چی دا پکی ودریږی تر څو چی د مونځ وخت تری نه ختمیده که د مونځ د وخت د ختمیدو یره وه نو اودس به کوی او څه کیږه به ځان ته کدی او مونځ به کوی

او دی کی د لګ او ډیر فرق نشته تر څو چی دا د سبیل نه خارجیږی نو ددی لګ او ډیر دواړه اودس لره ماتونکی دی

دا دهغه شیانو په خلاف چی د باقی بد ن نه راوځی لکه وینه اولتی نو ددی لګ او ډیر اودس نه ماتوی

او د بعضی زنانه چی دا خیال دی چی اودس پری نه ماتیږی د هغوی څه دلیل نشته مګر د ابن حزم قول هغه فرمایي چی دا اودس نه ماتوی لیکن هغه ددی لپاره دلیل ندی ذکر کړی

که چیرته یي د کتاب او سنت یا د اقوال صحابه نه دلیل ذکر کړی وی نو قول به یي حجت وی

نو زنانه له پکار ده چې د الله نه ویرېږی او په خپل پاکوالی خیال وساتی ځکه مونځ د پاکی نه بغیر نه قبلیږی اګر که سل کرته وشی بلکی بعضی علما وایی کوم کس چې د اودس نه بغیر مونځ کوی هغه کافر دی ځکه دا دالله په احکام پسی ټوقی کول دی

[س 36] د کومی ښځی چې همیشه لپاره اوبه راونی وی او د یو فرض مونځ لپاره اودس وکړی نو ایا هغی لپاره جایز دی چې دی اودس باندی نفل مونځ او قران ولولی تر دی چې د بل فرض مونځ وخت داخل شی؟
[جـ 36]کله چې هغه د فرض مونځ لپاره په اول وخت کی اودس وکړی نو کولی شی چې د بل مونځ د وخت دداخلیدو پوری فرض نفل او قران پدی اودس سره ولولی

[س 37] ایا ښځه(هغه چې د استحاضه وینه یې روانه وی) د سحر د مونځ په اودس باندی د اشراق مونځ کولی شی؟
[جـ 37] دا عمل صحیح ندی ځکه د اشراق مونځ یو خاص وقت لری او دهغی د وخت داخلیدلو نه پس دوباره اودس کول ضروری دی او ځکه چې دا زنانه د مستحاضه په حکم کی ده او هغی ته نبی علیه السلام امر کړی چې هر مونځ لپاره اودس وکړی
[س 38]
ایا دا ښځه د تهجد مونځ د ماښوستن په اودس شی کولی کله چې اوده شوی نه وی
؟.

[جـ 38]نه کله چې نیمه شپه تیره شي هغې باندې اودس کول واجب دي او بعضې علماو ویلې دي چې د ماښوستن په اودس باندې تهجد مونځ کولی شي او دا راجح موقف دی

[س 39] د ماښوستن د مونځ اخري وخت کوم یو دی او ددې پیژندنه په څه کیږي ؟

[جـ 39] د ماښوستن د مونځ اخري وخت نیمه شپه ده او ددې پیژندل داسې کیږي چې د ماښام نمر پریوتو نه تر سحر راختلو پورې وخت دوه حصو باندې تقسیم کړې شي نو اولنۍ نیمه حصه په ختمیدو د عشا وخت ختمیږي او اخرې نیمه حصه د مونځ وخت ندی البته د ماښوستن او سحر تر مینځ وخت دی

[س 40]کله چې یوې ښځې نه اوبه راځي او وقفې وقفې سره هغه اودس وکړي او مونځ نه مخکې بیا دغه راشي نو په هغې له څه پکار دي ؟

[جـ 40]که دغه اوبه کله کله راځي ( او بعضې وخت کې ودریګي) نو انتظار به کوي چې کله ودریږي مونځ به کوي او که داسې وي چې پته یې نه لږي کله راځي او کله ودریږي نو هغه به دوباره اودس نه کوي او مونځ به کوي هیڅ باک نشته

[س 41] که دا اوبه بدن یا لباس باندې واقع شي نو څه حکم دی ؟

[جـ 41]که دغه پاکې وي نو هیڅ نه لازمیږي او که نجسې وي لکه د مثانې نه راوتې وي نو وینځل یې ضروري دي

[س 42] ددې اوبو نه د اودس باره کې څه حکم دی ایا صرف د اندامونو په وینځلو به اکتفا کولی شي ؟

[جـ 42]هو پدی کی به صرف اندامونه وینځل وی کله چی دغه پاکی وی او د رحم نه راوځی نه د مثانی نه

[س 43] ددی څه وجه ده چی د نبی کریم ﷺ نه هیڅ حدیث دی باره کی نقل ندی چی پدی اوبو ( د زنانه د رحم نه راوځی) اودس ماتیږی حالانکه د هغه په دور کی به زنانه وو ددین باره کی پوښتنی کولی ؟

[جـ 43]ځکه دا سایل ( اوبه ) د هری زنانه نه نه راځی

[س 44] کومه زنانه چی ددی ( وینی یا اوبو ) نه اودس نه کوی ځکه هغه لا علمه ده نو هغی باندی څه لازم دی ؟

[جـ 44] دی لره پکار دی چی د علماو نه پوښتنه وکړی او الله تعالی ته توبه اوباسی

[س 45] بعضی خلک تاته نسبت کوی چی تاسو ددی (سایل ) په وجه اودس لازم نه گنړی

[جـ]څوک چی ماته ددی قول نسبت کوی هغه ریښتینی نه دی او هغه زما ددی خبری نه چی ما ویلی دا پاک دی دی څخه غلط پوهه شوی د ی چی اودس پری نه ماتیږی

[س 46]د هغه خړو اوبو څه حکم دی چی د حیض نه یو یا دوه ورځی مخکی د زنانه نه راځی او کله دا د یو تار په شکل وی او که د حیض نه پس وی نو څه حکم لری؟

[جـ 46]که دا چیرته د حیض نه مخکی راځی نو دا به د حیض وینه وی او ددی پته د درد نه لگی کوم چی په زنانه باندی راځی او د حیض نه پس چی

کومی خړی اوبه راځی هغه هم حیض دی دی وجی نه عایشه رضی الله عنها به زنانه وو ته فرمایل : جلدی مه کوی تر څو چی سپینی اوبه ونه وینی

## من أحكام الحيض في الحج والاعتمار
## په حج او عمری کی د حیض احکام

[س 47] حایضه به د احرام دوه رکعته څنګه ادا کوی او ایا د حایضی لپاره د قران ایاتونه په پټه لوستل جایز دی ؟
[جـ 47] د ټولو نه مخکی باید مونږ ته معلوم وی چی د احرام تړلو په وخت کی هیڅ مونځ د نبی کریم ﷺ نه ثابت ندی نه د هغه د فعل نه نه قول نه تقریر نه ثانیاً: دویم : دا حایضه ښځه چی د احرام نه مخکی حیض یی راغلی کولی شی چی احرام وتړی ځکه نبی کریم ﷺ اسما بنت عمیس  د ابوبکر رضی الله عنه ښځی ته په ذی الحلیفه کی امر کړی وو کله چی هغی بچی وزیږوو چی غسل وکړی او ځان ته یو کپړه کیږدی او احرام وتړی او په احرام کی به تر هغه پوری پاتی کیږی چی پاکه شی بیا به د بیت الله طواف او سعی کوی
او ایا قران لوستل ورله جایز دی او که نه ؟ نو جواب دادی چی د حاجت او مصلحت په وجه ورله قران لوستل جایز دی او که صرف د الله د قربت حاصلولو په غرض یی لولی ( د تعلیم په غرض نه ) نو بهتره داده چی ویی نه لولی
[س 48] یو ښځه چی پینځه ورځی مخکی یی حیض راغلی وو حج ته لاړه او د میقات ته رسیدو سره سم یی غسل وکړ احرام یی وتړه او تر وسه د حیض نه

پاکه شوی نده بیا مکه ته د رسیدو په وخت د حرم نه بهر پاتی شوه او د حج اعمال یې ادا نه کړل په منی کی دوه ورځی پاتی شوه بیا پاکه شوه او غسیل یې وکړ د حج ټول اعمال یې تر سره کړل او هغه پاکه وه بیا چې یې کله طواف افاضه کولو نو وینه یې راغله او د شرم د وجې یې د حج ټول افعال پوره کړل او خپل خاوند ته یې ددی خبری خبرهله ورکه چې کور ته واپس شوه

نو ددی باره کی څه حکم دی ؟

[جـ 48]پدی کی حکم دادی چې که چیرته دا وینه کومه چې طواف افاضه کی راغلی ده د حیض وینه وی چې ښځه یې ددرد په محسوسولو سره پیژنی نو طواف افاضه یې صحیح ندی او ضروری ده چې واپس مکی ته لاړه شی او دا طواف وکړی نو د میقات نه به د عمری نیت وکړی عمره به ادا کړی چې طواف دی سعی او سر وړوکی کول دی بیا به طواف افاضه وکړی
او که دا وینه د حیض وینه نه وی نو طواف یې صحیح دی نو که کور یې ډیر لری ملک کی وی ضروری نده چې بیرته لاړه شی او طواف یې صحیح دی
[س 49]یو ښځه د عمری په نیت مکه ته راغله او د رارسیدو سره سم حیض یې راغی او د هغی محرم فورا سفر کول غواړی دی ښځی سره بل محرم هم نشته نو څه به کوی ؟
[جـ]د خپل محرم سره به سفر کوی او په احرام کی پاتی کیږی کله چې پاکه شی بیرته به راځی دا چې کله پداسی ملک کی اوسیدل چې سفر کی تکلیف نه وی او فاسپورټ ته ضرورت نه لری

او که چیرته د لری ملک وی او راتلل ورله تکلیف وی نو ځانته به کپړه کړی او طواف سعی او تقصیر به کوی خپله عمره به مکمل کوی ځکه ددی طواف پدی وخت کی ضرورت دی او ضرورت په وجه حرام شی حلالیږی

[س 50] د هغی زنانه د حج څه حکم دی چی د حج په ورځو کی حیض یی راشی ایا حج یی صحیح دی ؟
ما حكم المرأة المسلمة التي حاضت في أيام حجها أيجزئها ذلك الحج؟.
[جـ 50] ددی سوال جواب ممکن ندی ځکه دا پته نشته چی کله حایضه شوی ځکه د حج بعضی کارونه داسی  دی چی د حیض په حالت کی هم ادا کولی شی او بعضی نشی نو د حیض په حالت کی د طواف نه علاوه ټول کارونه جایز دی
[س 51]یو زنانه پوښتنه کوی چی تیر کال ما حج ادا کړ او د حج ټول کارونه می وکړل سوا د طواف افاضه او طواف وداع نه ځکه دی نه د شرعی عذر په وجه زه منع شوم نو زه خپل کور ته راوپس شوم چی مدینه منوره کی دی او دا می اراده وه چی واپس لاړه شم او طواف افاضه او وداع وکړم لیکن ددین په احکام د ناپوهی په وجه ما ځان حلال کړی وی او هر هغه کارونه می کړی وو چی د احرام په وخت کی حرام وی
بیا ما پوښته وکړه چی ایا زه د طواف لپاره بیرته وس تلی شم ماته وویل شو چی ته نشی کولی وس طواف وکړی ځکه ستا حج فاسد شو او ته به راروان کال بیرته حج دسره کوی او غوا یا اوښ به هم حلالوی
نو ایا دا خبره صحیح ده او ایا زما حج فاسد شو ؟

[جـ 51] دا یو مصیبت دی چی د علم نه بغیر د فتوی ورکولو په وجه واقع شوی تا لره پکار دی چی مکه ته لاړه شی او صرف د افاضه طواف وکړی او هر چی طواف وداع دی نو دا په تا باندی لازم ندی ځکه د مکی نه د وتلو په وخت ته د حیض په حالت کی وی او حایضی باندی طواف وداع لازم ندی
ابن عباس رضی الله عنهما فرمایی : نبی علیه السلام خلکو ته حکم کړی وو چی هغوی طواف وداع وکړی البته حایضی ته ددی رخصتی وه
او روایت د ابو داود کی دی چی خلکو ته امر شوی وو چی اخری کار به د هغوی د بیت الله طواف کول وی
او نبی کریم ﷺ ته چی کله وویل شو چی صفیه طواف افاضه کړی هغی وفرمایل نو هغه وس تلی شی
نو دا دلیل دی چی طواف وداع د حایضی نه ساقط دی او هر چی طواف افاضه دی هغه ضروری دی
او تا چی ځان د هر شی نه حلال کړی او دا ددجهالت په وجه نو څه باک نشته ځکه که یو کس د احرام ممنوعات د جهل او ناپوهی د وجی وکړی هغی باندی هیڅ نشته
الله تعالی فرمایی: {رَبَّنَا لا تُؤَاخِذْنَا إِنْ نَسِينَا أَوْ أَخْطَأْنَا} [البقرة: 286] ..
[الأحزاب: 5] . ای ربه مه رانیسه مونږ کله چی هیر شو او کله چی خطا شو {وَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ فِيمَا أَخْطَأْتُمْ بِهِ وَلَكِنْ مَا تَعَمَّدَتْ قُلُوبُكُمْ}
او په تاسو باندی څه ګناه نشته کوم شی کی چی خطا شوی مګر هغه چی تاسو یی قصدا وکړی

نو د احرام ټول ممنوعه کارونه که حاجی د جهل یا نسیان په وجه وکړی یا مجبور کړی شی نو هیڅ شی پری نشته لیکن کله چی یې عذر ختم شو باید ویې نه کړی

[س 52] د نفاس والا زنانه کله چی یې نفاس د حج په اتمه ورځ شروع شو او د حج ټول کارونه یې وکړل مګر طواف او سعی ترینه پاتی ده مګر د لسمی ورځی نه پس هغی ته پته ولګیده چی هغه په ابتدایي طور سره پاکه شوه نو ایا غسل به کوی او باقی ارکان به ادا کوی ؟

[جـ 52]دی لپاره جایز ندی چی غسل وکړی تر دی چی د پاکوالی یقین یې نه وی راغلی او ددی سوال نه معلومیږی چی هغه پوره نده پاکه شوی نو باید هغه پوره پاکه شی بیا به غسل وکړی او طواف او سعی به ادا کیږ او که د طواف نه مخکی سعی وکړی نو څه حرج نشته ځکه نبی کریم ﷺ نه د هغه چا باره کی پوښتنه وشوه چی په حج کی یې د طواف نه مخکی سعی کړی وه هغه وفرمایل څه حرج نشته

[س 53] یوی زنانه د سیل علاقی نه د حیض په حالت کی احرام وتړه او کله چی مکه ته ورسیده جده ته لاړه څه حاجت یې وو او جده کی پاکه شوه غسل یې وکړه او سر یې ګمنز کړ بیا یې خپل حج مکمل که نو ایا دا حج یې صحیح دی او څه خو پری نه لازمیږی ؟

[جـ 53] حج یې صحیح دی هیڅ پری نشته

[س 54] زه عمری ته تلی وم او میقات باندی تیره شوم دی حالت کی چی زه حایضه وم ما احرام نه وو تړلی مکه کی پاتی شوم تر دی چی پاکه شوم بیا می د مکه نه احرام وتړه  ایا دا کار جایز دی او ما باندی څه لازم دی ؟
[جـ 54]دا عمل جایز ندی او کومه ښځه چی عمره کول غواړی هغی لره د میقات نه بغیر د احرام تړلو نه تیریدل جایز ندی اګر که حایضه وی هغه به احرام تړی او د حیض په حالت کی هم احرام تړل صحیح دی او ددی دلیل دادی چی د ابو بکر رضی الله عنه زوجه اسما بنت عمیس بچی زیږولی وو او نبی علیه السلام پدی وخت کی په ذو الحلیفه کی وو د حج اراده یی لرله نو اسما بنت عمیس نبی علیه السلام ته استاذی ولیږه پوښتنه یی کوله چی څه وکړی

نبی کریم ﷺ وفرمایل : غسل وکړه او ځان ته یو کپړه کیږده او احرام وتړه او د حیض وینه د نفاس د وینی په څیر ده نو مونږ هغی زنانه ته وایو چی عمره

کول غواړی او میقات نه تیریږی :غسل وکړه او ځان ته کپړه کیږده او احرام

وتړه او د کپړی ایخودلو معنی داده چی خپله شرمګاه نه به یوه کپړه راتاو کړی

بیا به احرام وتړی که د حج احرام وی یا د عمری لیکن هغه به طواف نه کوی

تر دی چی پاکه شی

دی وجی نبی علیه السلام حضرت عایشه ته فرمایلی وو کله چی هغه د عمری په دوران کی حایضه شوه چی هغه ټول کارونه کوه کوم چی عام حاجیان کوی مګر د بیت الله طواف مه کوه تر دی چی پاکه شی

او بخاری کی راځی چی کله هغه پاکه شوه نو د بیت الله طواف یې وکړ او صفا او مروه کی یې سعی وکړه نو دا دلیل د ی چی کله حایضه ښځه د حج احرام وتړی نو د طواف او سعی به نه کوی تر دی چی پاکه شی او غسل وکړی

البته که چیرته هغه طواف کوو او پاکه وه کله چی طواف ختم شو بیا یې حیض راغلی نو هغه به سعی کوی اګر که حیض یې وی او عمر ه به مکملوی ځکه د صفا او مروه مابین کی سعی کولو لپاره پاکوالی شرط ندی

[س 55] یو کس پوښتنه کوی چی زه او زما ښځه د عمری ادا کولو په نیت د ینبع نه مکه ته راغلو او کله چی جده ته ورسیدو زما ښځه حایضه شوه ما عمره پوره کړه لیکن زما ښځی عمره ادا نه کړه نو دی باره کی تاسو څه وایی ؟

[ج 55]

ستا د ښځی متعلق حکم دادی چی هغه کله پاکه شی نو د عمری قضا به راوړی ځکه نبی علیه السلام د صفیه باره کی فرمایلی وو کله چی هغه حایضه شوه : ایا هغه مونږ لره حصارونکی ده ؟ صحابه کرامو وویل نه هغی طواف افاضه کړی د ی نبی کریم ﷺ وفرمایل : بیا دی ځی نو

نو د نبی علیه السلام دا قول چی ایا هغه مونږ لره حصارونکی ده دلیل دی چی که ښځه د طواف افاضه نه مخکی حیض راشی هغه به پاتی کیږی تر څو چی پاکه شی بیا به طواف کوی او دغه شان د عمری طواف هم د طواف

افاضه په شان دی ځکه هغه د عمری رکن دی نو کله چی عمره کونکی ښځه د طواف نه مخکی حایضه شی انتظار به کوی تر څو چی پاکه شی بیا به طواف کوی

[س 56]

ایا د سعی ځای د مسجد څخه دی .؟ ایا حایضه به ورته ننژدی کیږی ؟ او یا څوک چی دی ته داخل شی نو تحیه المسجد به ادا کوی ؟

[جـ 56]

راجح موقف دادی چی د سعی ځای د مسجد څخه ندی دی وجی نه هغوی د مسجد او هغی مینځ کی دیوال کړی دی البته وړوکی دیوال دی او دا د خلکو لپاره بهتره ده که چیرته دا په مسجد کی داخل وی او دهغی برخه وی نو که ښځه د طواف او سعی په مابین کی حایضه کیدای هغی له به سعی کول جایز نه وی

او زه پدی فتوی ورکوم چی کله ښځه د طواف نه پس حایضه شی نو سعی به کوی ځکه د سعی ځای د مسجد څخه ندی

او هر چی تحیه المسجد دی نو که یو کس د طواف نه پس سعی وکړی او بیا مسجد ته راشی نو تحیه المسجد به کوی او که پریږدی څه حرج نشته او بهتر داده چی ادا یی کړی ځکه دا ځای د فضیلت ځای دی

[س 57]

یوه زنانه پوښتنه کوی چی ما حج وکړ او حیض می راغلی نو د شرم د وجی زه حرم ته ننوتم طواف او سعی می وکړه نو په ما باندی څه لازم دی حالانکه دا حیض د نفاس نه پس راغلی وو؟

[ج 57]
د حیض او نفاس والا ښځې لپاره جایز ندی چې مونځ وکړی برابره ده که مکه
کې وی او که هر ځای کې ځکه نبي علیه السلام فرمایي حایضه ښځه به مونځ
او روژی نه نیسی
او د مسلمانانو پدی اجماع ده چې حایضی لپاره حلال ندی چې روژه ونیسی یا
مونځ وکړی او دی ښځې له پکار دی چې الله ته توبه وباسی او ددی کار په
وجه دالله نه بخشش وغواړی
او ددی د حیض په حالت کې طواف کول صحیح ندی او سعی یې صحیح ده
ځکه راجح قول دادی چې سعی د طواف نه مخکې
کولی شی
دی وجې نه هغې باندی لازم دی چې دا طواف دوباره راوګرځوی ځکه
طواف افاضه دحج ارکانو څخه دی او دویم ځل حلالیدل پدی سره کیږی نو
دی وجی نه که دا ښځه واده والا وی خاوند ورسره جماع نشی کولی تر دی
چې طواف وکړی او که بې واده وی نو نکاح ورسره نشی کیدای تر دی چې
طواف وکړی
[س 58]
کله چې د عرفه په ورځ د ښځې حیض راشی څه به کوی؟
[ج 58]
که د عرفه په ورځ د ښځې حیض راشی هغه به حج جاری ساتی او ټول کارونه
د حج به ادا کوی مګر طواف هغه به د پاکوالی نه پس ادا کوی

[س 59] كله چې ښځه د شيطان ويشتلو نه پس پاكه شوه او طواف افاضه يې نه وى كړى نو هغه به څه كوى حالانكه بيرته راتګ ورله ممكن ندى ؟
[جـ 59]
كه بيرته راتلل ورله ممكن نه وى نو ځان ته به كپړه كدى او طواف به كيو ځكه ضرورت دى او هيڅ شى پرى نشته د ځج باقى اعمال به پوره كوى
[س 60]
كله چې د نفاس والا ښځه د څلوېښت ورځو نه مخكى پاكه شى نو ايا ځج يې صحيح دى او كله چې يې پاكوالى نه وى ليدلى نو څه به كوى او هغه د ځج اراده لرى ؟
[جـ 60]
كله چې د نفاس والا ښځه د څلويښت ورځو نه مخكى پاكه شى نو غسل به كوى مونځ به كوى او هغه ټول كارونه ورله جايز دى چې پاكو زنانه و لره جايز دى ځكه د نفاس كمه مده نشته
ليكن كه هغى پاكوالى نه وى ليدلى نو ځج يې صحيح دى ليكن طواف به نه كوى تر دى چې پاكه شى ځكه نبى عليه السلام حايضه د طواف نه منع كړى او نفاس د حيض پشان حكم لرى
وصلى الله على نبينا محمد وعلى آله وصحبه وسلم
وآخر دعوانا أن الحمد لله رب العالمين